| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| جمع مؤنث غائب | * | * | لَا يَذْبُبْنَ | لَا يُذْبَبْنَ |
| واحد مذكر حاضر | ذُبَّنْ | لِتُذَبَّنْ | لَا تَذُبَّ | لَا تُذَبَّ |
| تثنيه مذكر حاضر | * | * | لَا تَذُبَّا | لَا تُذَبَّا |
| جمع مذكر حاضر | ذُبُّنْ | لِتُذَبُّنْ | لَا تَذُبُّوا | لَا تُذَبُّوا |
| واحد مؤنث حاضر | ذُبِّنْ | لِتُذَبِّنْ | لَا تَذُبِّي | لَا تُذَبِّي |
| تثنيه مؤنث حاضر | * | * | لَا تَذُبَّا | لَا تُذَبَّا |
| جمع مؤنث حاضر | * | * | لَا تَذْبُبْنَ | لَا تُذْبَبْنَ |
| واحد مذكر و مؤنث متكلم | لِاَذُبَّنْ | لِاُذَبَّنْ | لَا اَذُبَّ | لَا اُذَبَّ |
| تثنيه و جمع مذكر و مؤنث متكلم | لِنَذُبَّنْ | لِنُذَبَّنْ | لَا نَذُبَّ | لَا نُذَبَّ |

## بحث نهي بانون ثقيله وخفيفه

| صيغي | نهي بانون ثقيله | | نهي بانون خفيفه | |
|---|---|---|---|---|
| | معروف | مجهول | معروف | مجهول |
| واحد مذكر غائب | لَايَذُبَّنَّ | لَايُذَبَّنَّ | لَايَذُبَّنْ | لَايُذَبَّنْ |
| تثنيه مذكر غائب | لَايَذُبَّانِّ | لَايُذَبَّانِّ | * | * |
| جمع مذكر غائب | لَايَذُبُّنَّ | لَايُذَبُّنَّ | لَايَذُبُّنْ | لَايُذَبُّنْ |
| واحد مؤنث غائب | لَاتَذُبَّنَّ | لَاتُذَبَّنَّ | لَاتَذُبَّنْ | لَاتُذَبَّنْ |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| تثنیه مؤنث غائب | لَاتَذُبَّانِّ | لَاتُذَبَّانِّ | * | * |
| جمع مؤنث غائب | لَایَذْبُبْنَانِّ | لَایُذْبَبْنَانِّ | * | * |
| واحد مذکر حاضر | لَاتَذُبَّنَّ | لَاتُذَبَّنَّ | لَاتَذُبَّنْ | لَاتُذَبَّنْ |
| تثنیه مذکر حاضر | لَاتَذُبَّانِّ | لَاتُذَبَّانِّ | * | * |
| جمع مذکر حاضر | لَاتَذُبُّنَّ | لَاتُذَبُّنَّ | لَاتَذُبُّنْ | لَاتُذَبُّنْ |
| واحد مؤنث حاضر | لَاتَذُبِّنَّ | لَاتُذَبِّنَّ | لَاتَذُبِّنْ | لَاتُذَبِّنْ |
| تثنیه مؤنث حاضر | لَاتَذُبَّانِّ | لَاتُذَبَّانِّ | * | * |
| جمع مؤنث حاضر | لَاتَذْبُبْنَانِّ | لَاتُذْبَبْنَانِّ | * | * |
| واحد مذکر و مؤنث متکلم | لَااَذُبَّنَّ | لَااُذَبَّنَّ | لَااَذُبَّنْ | لَااُذَبَّنْ |
| تثنیه و جمع مذکر و مؤنث متکلم | لَانَذُبَّنَّ | لَانُذَبَّنَّ | لَانَذُبَّنْ | لَانُذَبَّنْ |

## بحث اسم فاعل او اسم مفعول

| صیغې | واحد مذکر | تثنیه مذکر | جمع مذکر | واحد مؤنث | تثنیه مؤنث | جمع مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|
| اسم فاعل | ذَابٌّ | ذَابَّانِ | ذَابُّوْنَ | ذَابَّةٌ | ذَابَّتَانِ | ذَابَّاتٌ |
| اسم مفعول | مَذْبُوْبٌ | مَذْبُوْبَانِ | مَذْبُوْبُوْنَ | مَذْبُوْبَةٌ | مَذْبُوْبَتَانِ | مَذْبُوْبَاتٌ |

# تعليلات

ذَبَّ په اصل کي ذَبَبَ وو، اوله باء يې ساکنه کړه او په دوهمه کي يې مدغم کړه نو ذَبَّ سو، ځکه کله چي دوه حرف صحيح د يوه جنسه يا د يوه مخرجه وي او دواړه متحرک وي نو اول ساکن کيږي او په دوهم کي مدغم کيږي.

يَذُبُّ په اصل کي يَذْبُبُ وو، د اولي باء حرکت يې نقل کړ او ذال ته يې ورکړ، باء يې په باء کي مدغمه کړه نو يَذُبُّ سو، ځکه د ادغام په وخت کي ګورو چي د هم جنسو حروفو څخه اول متحرک دی که ساکن، که متحرک وي نو اول حرف ساکن کيږي او په دوهم کي مدغم کيږي لکه په ذَبَّ کي،او که د دواړو حروفو څخه اول ساکن وي نو د اول حرف حرکت هغه ته ورکول کيږي او بيا مدغم کيږي لکه په يَذُبُّ کي.

لَمْ يَذُبَّ په اصل کي لَمْ يَذْبُبْ وو، د باء ضمه يې نقل کړه او ذال ته يې ورکړه، دوه ساکنه جمع سول ځکه نو دوهم حرف ته يې حرکت ورکړ، ځيني فتحه ورکوي (لِاَنَّ الْفَتْحَةَ اَخَفُّ الْحَرَكَاتِ) او ځيني کسره ورکوي (لِاَنَّ السَّاكِنَ اِذَا حُرِّكَ حُرِّكَ بِالْكَسْرِ) او ځيني د مخکي حرف د موافقت په وجه ضمه ورکوي او ځيني يې پر خپل اصلي حالت پرېږدي، نو څلور صورتونه جائز دي:

لَمْ يَذُبَّ لَمْ يَذُبِّ لَمْ يَذُبُّ لَمْ يَذْبُبْ

ذُبَّ (امر حاضر معروف) او لَاتَذُبَّ (نهي حاضر معروف) په اصل كي اُذْبُبْ او لَاتَذْبُبْ وه د لَمْ يَذُبَّ په ډول، په دوئ كي هم ټول صورتونه جائز دي .

## ضروري فائدې

**١ - فائده**: په مضاعف كي چي د دوو حروفو په جمع كېدو سره كوم بدلون راځي د هغه درې صورتونه دي :

١. ادغام قياسي، لكه ذَبَّ چي په اصل كي ذَبَبَ وو، باء يې په باء كي مدغم كړه .

٢. حذف سماعي، لكه ظَلْتُمْ چي په اصل كي ظَلَلْتُمْ وو، دوهم لام يې حذف كړ .

٣. ابدال سماعي، لكه اَمْلَيْتُ چي په اصل كي اَمْلَلْتُ وو، دوهم لام يې په ياء بدل كړ .

**٢ - فائده**: كوم حرف چي مدغم كيږي هغه ته مدغم او په كوم حرف كي چي مدغم كيږي هغه ته مدغم فيه وايي، لكه په ذُبَّ كي اوله باء مدغم او دوهمه باء مدغم فيه ده .

**٣ - فائده**: كه مدغم او مدغم فيه دواړه قريب المخرج وي نو په ليكلو كي دواړه قائم وي او په ادا كولو كي يو ډول ليكل كيږي لكه: وَجَدْتُّ او ويل كيږي: وَجَتُّ ، او كه دواړه حروف د يوه جنسه وي نو په ادا كولو كي دواړه راځي او په ليكلو كي يوازي يو لكه : ذَبَّ.

۴- **فائده**: چيري چي دوه حروف قريب المخرج جمع سي، اول ساكن او دوهم متحرک وي نو اول په دوهم بدليږي او مدغم كيږي لكه اِدَّعیٰ چي په اصل كي اِدْتَعیٰ وو، تاء يې په دال بدله كړه او په دال كي يې مدغمه كړه نو اِدَّعیٰ سو.

۵- **فائده**: كه چيري د افتعال فاء د (دذز) كلمه وي نو د افتعال تاء په دال بدليږي لكه اِدِّعَاءٌ، اِذَّخَارٌ، اِزْدِحَامٌ چي په اصل كي اِدْتِعَاءٌ، اِذْتِخَارٌ، اِزْتِحَامٌ وه.

۶- **فائده**: كه چيرې د افتعال د فاء كلمه د حروف اطباق (ص ض ط ظ) څخه وي نو تاء په طاء بدليږي لكه اِصْطَلَحَ، اِضْطَرَبَ، اِطَّلَعَ، اِظْطَلَمَ چي په اصل كي اِصْتَلَحَ، اِضْتَرَبَ، اِطَّلَعَ، اِظْتَلَمَ وه.

۷- **فائده**: كه د تفعل او تفاعل د فاء كلمه د يوولس حروفو (ت، ث، د، ذ، ز، س، ش، ص، ض، ط، ظ) څخه وي نو جائز ده چي د تفعل او تفاعل تاء په فاء كلمه بدله سي او په هغه كي مدغم سي او په سر كي د ساكن كېدو په وجه همزه وصل راوړل سي لكه اِطَّهَّرَ، يَطَّهَّرُ، اِطَّهُّرًا چي په اصل كي تَطَهَّرَ، يَتَطَهَّرُ، تَطَهُّرًا وه، او اِثَّاقَلَ، يَثَّاقَلُ، اِثَّاقُلًا چي په اصل كي تَثَاقَلَ، يَتَثَاقَلُ، تَثَاقُلًا وه.

# مختلف تعلیلات

**۱- تعلیل**: د کوم الف مخکي چي ضمه وي هغه په واو بدلیږي لکه : خَادَعَ، خُوْدِعَ او خَالِـدٌ و خُوَیْلِـدٌ.

**۲- تعلیل**: کوم الف چي مخکي حرف یې مکسور وي هغه په یاء بدلیږي لکه مِحْرَابٌ، مَحَارِیْبُ او مِفْتَاحٌ، مَفَاتِیْحُ.

**۳- تعلیل**: کوم حروف مده چي پر دریم ځای وي او زائد وي او د فعاعل د الف وروسته واقع وي نو هغه همزه کیږي لکه کَرِیْمٌ، کَرَائِمُ، صَحِیْفَةٌ، صَحَائِفُ.

**۴- تعلیل**: که د جمع الف د دوه واوه یا یاوو په منځ کي واقع وي په هغو کي یو په همزه بدلیږي لکه اَوَّلُ، اَوَائِلُ چي په اصل کي اَوَاوِلُ وه، او خَیْرٌ وَ خَیَائِرُ چي په اصل کي خَیَایِرُ وه.

**۵- تعلیل**: کوم واو چي په شروع کي وي که مکسور وي یا مضموم، د هغه په همزه بدلول جائز دي لکه وُجُوْهٌ واُجُوْهٌ ووُقِّتَتْ اُقِّتَتْ ووِشَاحٌ واِشَاحٌ.

**فائده**: مفتوح واو یوازي په دوو ځایو کي په همزه بدل سوی دی لکه اَحَدٌ چي په اصل کي وَحَدٌ وو او اَنَـاةٌ چي په اصل کي وَنَـاةٌ وو.

**۶- تعلیل**: که چیري په شروع کي دوه متحرک واوه واقع وي نو د اول واو په همزه بدلول واجب دي لکه اَوَاصِلُ چي په اصل کي وَوَاصِلُ

(جمع وَاصِلُ)وو او اَوَاعِدُ چي په اصل کي وَوَاعِـدُ وو.

**۷-تعليل**: کوم واو چي په مفرد کي ساکن وي او په جمع کي د الف او کسره په منځ کي واقع وي هغه په ياء بدليږي لکه حَوْضٌ وحِيَاضٌ و رَوْضٌ و رِيَاضٌ چي په اصل کي حِوَاضٌ و رِوَاضٌ وه.

**۸- تعليل**: د ناقص واوي جمع چي د فعول پر وزن راسي په هغه کي دواړه واوه په ياء بدليږي او تر هغه مخکي حرف ته کسره ورکول کيږي لکه دُلِـيٌّ چي په اصل کي دُلُوْوٌ وو.

## د ابواب مُعَلَّلَه نقشه

د دغه نقشې څخه د ټولو بابو تعليل سوي صورتونه معلوميږي لکه څرنګه چي د بابو وزنونه ټاکل سوي دي همداسي دغه نقشه تعليل سوی وزن ښيي چي د نَصَرَ يَنْصُرُ: تعليل وسي نو په دغه صورتو کي راځي، او ضَرَبَ يَضْرِبُ په دومره صورتو کي، همدارنګه د ټولو بابو خراب سوي صورتونه معلوميږي، که چيري ددغه نقشې مطابق هر باب په ياد کړل سي نو د صيغې را ايستلو ښه قوت به پيدا سي،

والله الموفق.

| باب | مصدر | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب: نَصَرَ يَنْصُرُ | اَلْقَوْلُ | قَالَ | يَقُوْلُ | قَائِلٌ | قُلْ | لَاتَقُلْ |
| | ويل | قِيْلَ | يُقَالُ | مَقُوْلٌ | لِتُقَلْ | لَاتُقَلْ |
| | اَلدَّعْوَةُ | دَعَا | يَدْعُوْ | دَاعٍ | اُدْعُ | لَاتَدْعُ |
| | رابلل | دُعِيَ | يُدْعٰى | مَدْعُوٌّ | لِتُدْعَ | لَاتُدْعَ |
| | اَلصَّبُّ | صَبَّ | يَصُبُّ | صَابٌّ | صُبَّ | لَاتَصُبَّ |
| | تويول | صُبَّ | يُصَبُّ | مَصْبُوْبٌ | لِتُصَبَّ | لَاتُصَبَّ |
| | اَلْاَخْذُ | اَخَذَ | يَاْخُذُ | اٰخِذٌ | خُذْ | لَاتَاْخُذْ |
| | اخيستل | اُخِذَ | يُؤْخَذُ | مَاْخُوْذٌ | خُذْ | لَاتُؤْخَذْ |
| باب: ضَرَبَ يَضْرِبُ | اَلْبَيْعُ | بَاعَ | يَبِيْعُ | بَائِعٌ | بِعْ | لَاتَبِعْ |
| | پلورل | بِيْعَ | يُبَاعُ | مَبِيْعٌ | لِتُبَعْ | لَاتُبَعْ |
| | اَلرَّمْيُ | رَمٰى | يَرْمِيْ | رَامٍ | اِرْمِ | لَاتَرْمِ |
| | ويشتل | رُمِيَ | يُرْمٰى | مَرْمِيٌّ | لِتُرْمَ | لَاتُرْمَ |
| | اَلْمَجِيْئُ راتلل | جَاءَ | يَجِيْئُ | جَاءٍ | جِئْ | لَاتَجِئْ |
| | اَلْاِتْيَانُ راتګ | اَتٰى | يَاْتِيْ | اٰتٍ | اِيْتِ | لَاتَاْتِ |
| | اَلْوَعْدُ | وَعَدَ | يَعِدُ | وَاعِدٌ | عِدْ | لَاتَعِدْ |
| | وعده كول | وُعِدَ | يُوْعَدُ | مَوْعُوْدٌ | لِتُوْعَدْ | لَاتُوْعَدْ |
| | اَلْوِقَايَةُ | وَقٰى | يَقِيْ | وَاقٍ | قِ | لَاتَقِ |
| | ساتل | وُقِيَ | يُوْقٰى | مَوْقِيٌّ | لِتُوْقَ | لَاتُوْقَ |

| باب: سَمِعَ يَسْمَعُ | اَلْفِرَارُ تېښته کول | فَرَّ | يَفِرُّ | فَارٌّ | فِرَّ | لَاتَفِرَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | اَلطَّيُّ کتول | طَوٰى | يَطْوِى | طَاوٍ | اِطْوِ | لَاتَطْوِ |
| | اَلْخَوْفُ بېريدل | خَافَ | يَخَافُ | خَائِفٌ | خَفْ | لَاتَخَفْ |
| | اَلْخَشْيَةُ بېره کول | خَشِيَ | يَخْشٰى | خَاشٍ | اِخْشَ | لَاتَخْشَ |
| | اَلْمَسُّ مسه کول | مَسَّ | يَمَسُّ | مَاسٍ | مَسَّ | لَاتَمَسَّ |
| باب: فَتَحَ يَفْتَحُ | الرُّؤْيَةُ ليدل | رَاٰى | يَرٰى | رَاءٍ | رَ | لَاتَرَ |
| | | رُاِيَ | يُرٰى | مَرْئِيٌّ | لِتُرَ | لَاتُرَ |
| | اَلرِّعَايَةُ ساتنه کول | رَعٰى | يُرْعٰى | مَرْعِيٌّ | اِرْعَ | لَاتَرْعَ |
| | | رُعِيَ | يُرْعٰى | مَرْعِيٌّ | لِتُرْعَ | لَاتَرْعَ |
| | اَلْوَضْعُ ايښودل | وَضَعَ | يَضَعُ | وَاضِعٌ | ضَعْ | لَاتَضَعْ |
| | | وُضِعَ | يُوْضَعُ | مَوْضُوْعٌ | لِتُوْضَعْ | لَاتُوْضَعْ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم فاعل | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب كَرُمَ يَكْرُمُ | اَلْوَسْمُ بنائسته كېدل | وَسُمَ | يَوْسُمُ | وَسِيْمٌ | سُمْ | لَاتَسُمْ |
| | الرِّخْوَةُ نرم كېدل | رَخُوَ | يَرْخُوْ | رَخِيٌّ | اُرْخُ | لَاتَرْخُ |
| | اَلْيُمْنُ بابركت كېدل | يَمُنَ | يَيْمُنُ | يَمِيْنٌ | اُوْمُنْ | لَاتَيْمُنْ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم فاعل | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب حَسِبَ يَحْسِبُ | اَلْوَلْيُ نژدې كېدل | وَلِيَ | يَلِيْ | وَالٍ | لِ | لَاتَلِ |
| | اَلْوَرْمُ شوړېدل | وَرِمَ | يَرِمُ | وَارِمٌ | رِمْ | لَاتَرِمْ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم فاعل / مفعول | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب: افتعال | اَلْاِجْتِبَاءُ قبلول | اِجْتَبٰى | يَجْتَبِيْ | مُجْتَبٍ | اِجْتَبِ | لَاتَجْتَبِ |
| | | اُجْتُبِيَ | يُجْتَبٰى | مُجْتَبًى | لِتُجْتَبَ | لَاتُجْتَبَ |
| | اَلْاِخْتِيَارُ خوښول | اِخْتَارَ | يَخْتَارُ | مُخْتَارٌ | اِخْتَرْ | لَاتَخْتَرْ |
| | | اُخْتِيْرَ | يُخْتَارُ | مُخْتَارٌ | لِتُخْتَرْ | لَاتُخْتَرْ |
| | اَلْاِتِّقَادُ بلول | اِتَّقَدَ | يَتَّقِدُ | مُتَّقِدٌ | اِتَّقِدْ | لَاتَتَّقِدْ |
| | اَلْاِهْتِمَامُ بندوبست كول | اِهْتَمَّ | يَهْتَمُّ | مُهْتَمٌّ | اِهْتَمَّ | لَاتَهْتَمَّ |
| | اَلْاِهِدَّاءُ هدايت تر لاسه كول | اِهِدّٰى | يَهِدِّيْ | مُهِدٍّ | اِهِدِّ | لَاتَهِدِّ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب: اِسْتِفْعَال | اَلْاِسْتِعْلَاءُ لوړېدل | اِسْتَعْلَى | يَسْتَعْلِي | مُسْتَعْلٍ | اِسْتَعْلِ | لَاتَسْتَعْلِ |
| | | اُسْتُعْلِيَ | يُسْتَعْلَى | مُسْتَعْلٍ | لِتُسْتَعْلَ | لَاتُسْتَعْلَ |
| | اَلْاِسْتِعَانَةُ مرسته غوښتل | اِسْتَعَانَ | يَسْتَعِيْنُ | مُسْتَعِيْنٌ | اِسْتَعِنْ | لَاتَسْتَعِنْ |
| | | اُسْتُعِيْنَ | يُسْتَعَانُ | مُسْتَعَانٌ | لِتُسْتَعَنْ | لَاتُسْتَعَنْ |
| | اَلْاِسْتِمْدَادُ مرسته غوښتل | اِسْتَمَدَّ | يَسْتَمِدُّ | مُسْتَمِدٌّ | اِسْتَمِدَّ | لَاتُسْتَمِدُّ |
| | | اُسْتُمِدَّ | يُسْتَمَدُّ | مُسْتَمَدٌّ | لِتُسْتَمَدَّ | لَاتُسْتَمَدَّ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب: انفعال | اَلْاِنْقِيَادُ تابع کېدل | اِنْقَادَ | يَنْقَادُ | مُنْقَادٌ | اِنْقَدْ | لَاتَنْقَدْ |
| | اَلْاِنْضِمَامُ يوځای کېدل | اِنْضَمَّ | يَنْضَمُّ | مُنْضَمٌّ | اِنْضَمَّ | لَاتَنْضَمَّ |

| باب | مصدر | ماضي | مضارع | اسم | امر | نهي |
|---|---|---|---|---|---|---|
| باب: افعال | اَلْاِعَانَةُ مرسته کول | اَعَانَ | يُعِيْنُ | مُعِيْنٌ | اَعِنْ | لَاتُعِنْ |
| | | اُعِيْنَ | يُعَانُ | مُعَانٌ | لِتُعَنْ | لَاتُعَنْ |

| باب: افعال | اَلْاِلْقَاءُ | اَلْقٰی | یُلْقِیْ | مُلْقٍ | اَلْقِ | لَاتُلْقِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | اچول | اُلْقِیَ | یُلْقٰی | مُلْقًی | لِتُلْقَ | لَاتُلْقَ |
| | اَلْاِیْفَاءُ | اَوْفٰی | یُوْفِیْ | مُوْفٍ | اَوْفِ | لَاتُوْفِ |
| | پوره کول | اُوْفِیَ | یُوْفٰی | مُوْفًی | لِتُوْفَ | لَاتُوْفَ |
| | اَلْاِرَاءَةُ | اَرٰی | یُرِیْ | مُرٍ | اَرِ | لَاتُرِ |
| | ښودل | اُرِیَ | یُرٰی | مُرًی | لِتُرَ | لَاتُرَ |
| | اَلْاِیْمَانُ | اٰمَنَ | یُؤْمِنُ | مُؤْمِنٌ | اٰمِنْ | لَاتُؤْمِنْ |
| | خواهش کول | اُوْمِنَ | یُؤْمَنُ | مُؤْمَنٌ | لِتُؤْمَنْ | لَاتُؤْمَنْ |
| | اَلْاِیْتَاءُ | اٰتٰی | یُؤْتِیْ | مُؤْتٍ | اٰتِ | لَاتُؤْتِ |
| | ورکول | اُوْتِیَ | یُؤْتٰی | مُؤْتًی | لِتُؤْتَ | لَاتُؤْتَ |
| | اَلْاِحْبَابُ | اَحَبَّ | یُحِبُّ | مُحِبٌّ | اَحِبَّ | لَاتُحِبَّ |
| | خوښول | اُحِبَّ | یُحَبُّ | مُحَبٌّ | لِتُحَبَّ | لَاتُحَبَّ |

| باب: تفعیل | اَلتَّسْمِیَةُ | سَمّٰی | یُسَمِّیْ | مُسَمٍّ | سَمِّ | لَاتُسَمِّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | نوم اېښودل | سُمِّیَ | یُسَمّٰی | مُسَمًّی | لِتُسَمَّ | لَاتُسَمَّ |

| باب: تفعّل | اَلتَّوَفِّیْ | تَوَفّٰی | یَتَوَفّٰی | مُتَوَفٍّ | تَوَفَّ | لَاتَتَوَفَّ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | پوره اخیستل | تُوُفِّیَ | یُتَوَفّٰی | مُتَوَفًّی | لِتُتَوَفَّ | لَاتُتَوَفَّ |

| باب: تفاعل | اَلتَّسَاوِیْ | تَسَاوٰی | یَتَسَاوٰی | مُتَسَاوٍ | تَسَاوَ | لَاتَتَسَاوَ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | برابر بدل | تُسُوْوِیَ | یُتَسَاوٰی | مُتَسَاوًی | لِتُتَسَاوَ | لَاتُتَسَاوَ |
| | اَلتَّحَابُ مینه درلودل | تَحَابَّ | یَتَحَابُّ | مُتَحَابٌّ | تَحَابَّ | لَاتَتَحَابَّ |

| باب: مفاعله | اَلْمُلَاقَاتُ | لَاقٰی | یُلَاقِیْ | مُلَاقٍ | لَاقِ | لَاتُلَاقِ |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | یو بل لیدل | لُوْقِیَ | یُلَاقٰی | مُلَاقًی | لِتُلَاقَ | لَاتُلَاقَ |
| | اَلْمُحَابَّةُ | حَابَّ | یُحَابُّ | مُحَابٌّ | حَابَّ | لَاتُحَابَّ |
| | په خپلو کي مینه کول | حُوْبَّ | یُحَابُّ | مُحَابٌّ | لِتُحَابَّ | لَاتُحَابَّ |

د علم الصرف

دریمه برخه

ختمه سوه

# علم الصرف ځلورمه برخه

په دغه برخه کي دوه بابونه دي!

## اول باب

### د اسمونو د وزنو په بيان کي

د اسم درې ډوله دي:

۱. جامد.

۲. مصدر.

۳. مشتق.

**اسم جامد:** هغه اسم دی چي د هغه څخه صيغه نه جوړيږي او نه خپله د چا څخه جوړ سوی وي، د اسم جامد درې ډوله دي:

۱. ثلاثي.

۲. رباعي.

۳. خماسي.

بيا په دغه درو کي د هريوه دوه ډوله دي:

۱. مجرد.

۲. مزيد فيه.

همدارنگه ټول شپږ ډوله سوه.

۱. ثلاثي مجرد.

۲. ثلاثي مزيد فيه.

۳. رباعي مجرد.
۴. رباعي مزيد فيه
۵. خماسي مجرد.
۶. خماسي مزيد فيه.

**۱ – ثلاثي مجرد:** هغه اسم دی چي په هغه کي درې حروف اصلي وي او هيڅ زائد حرف نه وي، د ثلاثي مجرد لس وزنونه دي: فَلْسٌ (روپۍ) فَرِسٌ (آس) كَتِفٌ (ورږه) عَضُدٌ (بازو) حِبْرٌ (هوښيار) عِنَبٌ (انگور) اِبِـلٌ (اوښ) قُفْلٌ (قلف) صُرَدٌ(چوغکه) عُنُقٌ (غاړه).

**۲ – ثلاثي مزيد فيه:** هغه اسم دی چي په هغه کي تر درو حروفو زيات وي، د ثلاثي مزيد فيه بې شمېره وزنونه دي لکه : بِطِّيْخٌ، جَاسُوْسٌ، وَغَيْرُذَالِکَ مَالَاتُعَدُّ وَلَا تُحْصَى.

**۳ – رباعي مجرد:** هغه اسم دی چي په هغه کي څلور حروف اصلي وي او هيڅ يو زائد پکښي نه وي، او په هغه کي لام يو ځل راځي، لکه: فَعْلَلَ ، ددغه وزنونه پنځه دي: جَعْفَرٌ، دِرْهَـمٌ، زِبْرِجٌ ،بُرْثُنٌ (د زمري پنجه) قِمَطْرٌ(صندوق).

**۴ – رباعي مزيد فيه:** هغه اسم دی چي تر څلورو حروفو زيات پکښې وي او ددغه وزنونه ډېر کم دي لکه : مَنْجَنُوْقٌ پروزن د مَفْعَلُوْلٌ ، عَنْكَبُوْتٌ پر وزن د فَعْلَلُوْتٌ .

**٥- خماسي مجرد:** هغه اسم دی چي پنځه حروف اصلي پکښې وي او هيڅ يو حرف زائد نه وي، ددغه ځلور وزنونه دي : سَفَرْجَلٌ (....) قُذَعْمِلٌ (قوي اوبن) جَحْمَرِشٌ (.....) قِرْطَعْبٌ (لږ شی).

**٦- خماسي مزيد فيه :** هغه اسم دی چي تر پنځو حروفو زيات پکښې وي او د هغه پنځه وزنونه دي: عَضْرَفُوْطٌ (.....) قَبَعْثَرَی (.....) قِرْطَبُوْسٌ (ستر مصيبت) خُزَعْبِيْلٌ (باطل شی) خَنْدَرِيْسٌ (زاړه شراب).

**فائده:** څرګنده دي وي چي په يو اسم کي زائد حروف تر ځلورو زيات نه وي او نه يو اسم تر اوو حروفو زيات وي، نو په ثلاثي مزيد فيه کي تر ځلورو حروفو پوري زيات وي لکه : حِمَارٌ (يو زائد) مِقْوَالٌ (دوه زائده) مُسْتَنْصِرٌ (درې زائده) اِسْتِنْصَارٌ (ځلور زائده).

او په رباعي مزيد فيه کي تر درو حروفو پوري زيات وي لکه : قَنْفَجَرٌ (يو زائد) مُتَدَحْرِجٌ (دوه زائده) عَبُوْثَرَانِ (درې زائده).

او په خماسي مزيد فيه کي تر دوو حروفو پوري زائد وي لکه : عَضْرَفُوْطٌ (يو زائد) اِصْطَفْلِيْنَ (دوه زائد).

## اسم مصدر

اسم مصدر هغه دی چي د هغه څخه فعل او اسم مشتق راوځي او د هغه د فارسي د ترجمې په آخر کي (دن) يا (تن) راځي او د پښتو ترجمې په

آخر كي (ل) راځي ، لكه : اَلْاَكْلُ: خوردن، خوړل، اَلْغُسْلُ:شستن، پرېولل .

د ثلاثي مجرد د مصدرو وزنونه تقريبا پنځوس دي چي په لاندي نقشه كي راوړل سوي دي :

| وزن مصدر ثلاثي مجرد | مثال | معنى | باب |
|---|---|---|---|
| فَعْلٌ | قَتْلٌ | وژل | نَصَرَيَنْصُرُ |
| فِعْلٌ | فِسْقٌ | نافرماني كول | نَصَرَ |
| فُعْلٌ | شُكْرٌ | شكر كول | نَصَرَ |
| فَعْلَةٌ | رَحْمَةٌ | مهرباني كول | سَمِعَ |
| فُعْلَةٌ | كُدْرَةٌ | په ګرد كېدل | سَمِعَ |
| فِعْلَةٌ | نِشْدَةٌ | د ورك سوي پلټهنه كول | نَصَرَ |
| فَعَلٌ | طَلَبٌ | پلټهنه كول | نَصَرَ |
| فَعِلٌ | خَنِقٌ | په دار كول | ضَرَبَ |
| فَعَلَةٌ | غَلَبَةٌ | غالب كېدل | ضَرَبَ |
| فَعِلَةٌ | سَرِقَةٌ | غلا كول | ضَرَبَ |
| فِعَلٌ | صِغَرٌ | كوچنی كېدل | كَرُمَ |

| فُعَلٌ | هُدًی اصل هُدَیٌ | لار ښودل | ضَرَبَ |
|---|---|---|---|
| فَعَالٌ | ذَهَابٌ | تلل | فَتَحَ |
| فِعَالٌ | قِيَامٌ | درېدل | نَصَرَ |
| فُعَالٌ | سُوَالٌ | سوال کول | فَتَحَ |
| فَعْلَانٌ | لَيَّانٌ | د پور په ادا کولو کي ځنډ کول | ضَرَبَ |
| فِعْلَانٌ | حِرْمَانٌ | بې برخي کېدل | ضَرَبَ |
| وزن مصدر ثلاثي مجرد | مثال | معنی | باب |
| فَعَلَانٌ | نَزَوَانٌ | نر د ښځي سره يو ځای کول | نَصَرَ |
| فَعْلُوْلَةٌ | قَيْلُوْلَةٌ | د غرمې خوب کول | ضَرَبَ |
| مَفْعُوْلَةٌ | مَكْذُوْبَةٌ | درواغ ويل | ضَرَبَ |
| فَعُوْلٌ | قَبُوْلٌ | قبلول | سَمِعَ |
| فَعُّوْلَةٌ | جَبُّوْرَةٌ | غرور کول | نَصَرَ |
| فَعْلَاءٌ | رَغْبَاءٌ | خواهش کول | سَمِعَ |
| فَعَلُوْةٌ | رَغَبُوْةٌ | ډېر خواهش کول | سَمِعَ |
| تِفِعَّالٌ | تِقِطَّاعٌ | ډېر پرېکول | فَتَحَ |
| فُعُلّٰى | غُلُبّٰى | ډېره غلبه ترلاسه کول | ضَرَبَ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| فَعَالَةٌ | زَهَادَةٌ | پرهيزگار كيدل | سَمِعَ |
| فِعَالَةٌ | دِرَايَةٌ | معلوموك | ضَرَبَ |
| فُعَالَةٌ | بُغَايَةٌ | پلټنه كول | ضَرَبَ |
| فَعِيْلٌ | وَمِيْضٌ | د برېښنا ځليدل | ضَرَبَ |
| فَعِيْلَةٌ | قَطِيْعَةٌ | قطع كول | فَتَحَ |
| فُعُوْلٌ | دُخُوْلٌ | داخليدل | نَصَرَ |
| فُعُوْلَةٌ | صُهُوْبَةٌ | سروسپين كيدل | سَمِعَ |
| مَفْعَلٌ | مَدْخَلٌ | داخليدل | نَصَرَ |

| وزن مصدر ثلاثي مجرد | مثال | معنى | باب |
|---|---|---|---|
| مَفْعِلٌ | مَيْسِرٌ | خماركول | ضَرَبَ |
| مَفْعَلَةٌ | مَسْعَاةٌ اصل مَسْعَيَةٌ | كوښښ كول | فَتَحَ |
| مَفْعِلَةٌ | مَحْمِدَةٌ | تعريف كول | سَمِعَ |
| فَعْلٰى | دَعْوٰى | رابلل | نَصَرَ |
| فُعْلٰى | بُشْرٰى | زيرى وركول | نَصَرَ |
| فِعْلٰى | ذِكْرٰى | يادول | نَصَرَ |
| تَفْعَالٌ | تَجْوَالٌ | ډېر گرځېدل | نَصَرَ |

| فُعْلَانٌ | غُفْرَانٌ | بخښنه کول | ضَرَبَ |
|---|---|---|---|
| فَعَالِيَةٌ | كَرَاهِيَةٌ | ناخوښه کول | سَمِعَ |
| مَفْعُوْلٌ | مَكْذُوْبٌ | دروغ ویل | ضَرَبَ |
| فَاعِلَةٌ | كَاذِبَةٌ | دروغ ویل | ضَرَبَ |
| مَفْعُلَةٌ | مَمْلُكَةٌ | مالک کېدل | ضَرَبَ |
| فَعْلُوَةٌ | جَبْرُوَةٌ | غرور کول | نَصَرَ |
| فَيْعُوْلَةٌ | كَيْنُوْنَةٌ | کېدل | نَصَرَ |
| فَعَلُوْتَى | رَغَبُوْتَى | ډېر خواهش کول | سَمِعَ |
| فِعِّيْلَى | دِلِّيْلَى | ډېره لارښوونه کول | نَصَرَ |

۱ – **فائده**: کوم مصدرونه چې د يو کسب، صنعت يا کاروبار په معنی وي هغه اکثره د فَعَالَةٌ يا فِعَالَةٌ پر وزن راځي، لکه: دِبَاغَةٌ، حِجَامَةٌ، حِيَاكَةٌ، خِيَاطَةٌ، كِتَابَةٌ.

۲ – **فائده**: د ثلاثي مجرد مصدر ميمي د هر باب څخه د مَفْعَلُ، مَفْعِلُ پر وزن راځي لکه مَقْدَمٌ (مخته کېدل) مَضْرِبٌ (وهل) او د هغه په آخر کي تاء هم راځي لکه مَحْمِدَةٌ (حمد کول)، مَسْئَلَةٌ (سوال کول) او فَعْلَةٌ په معنی د مره او فِعْلَةٌ په معنی د نوعيت هم د هر باب څخه راځي لکه ضَرْبَةٌ يو ځل وهل، او يو ضِرْبَةٌ ډول وهل.

**٣- فائده:** د ثلاثي مزيد فيه او رباعي مزيد فيه د مصدرو وزنونه تل کل سوي دي لکه اِفْتِعَالٌ، اِسْتِفْعَالٌ، فَعْلَلَةٌ، تَفَعْلُلٌ او داسي نور. د تفعيل د باب مصدر کله د تَفْعِلَةٌ پر وزن راځي لکه تَجْرِبَةٌ او کله د فِعَالٌ، فِعَّالٌ پر وزن هم راځي لکه کَذَّبَ، يُکَذِّبُ کِذَابًا و کِذَّابًا، او فَعَالٌ لکه سَلَّمَ، تَسْلِيْمًا و سَلَامًا ، او تَفْعَالٌ لکه کَرَّرَ تَکْرَارً ، او تِفْعَالٌ لکه بَيَّنَ يُبَيِّنُ تِبْيَانًا ، او د فَعْلَلَةٌ د باب مصدر کله د فِعْلَالٌ پر وزن هم راځي لکه زَلْزَلَ يُزَلْزِلُ زِلْزَالًا .

**اسم مشتق :** هغه اسم دی چي د مصدر څخه وځي په داسي ډول چي د مصدر معنی او ماده په هغه کي پاته وي يوازي د هغه يو نوی صورت پيدا سي لکه د سپينو زرو څخه لوښی يا ګهڼې جوړيږي چي په هغه کي د سپينو زرو حيثيت او ماده پاته وي يوازي نوی صورت پيدا کيږي ، د اسم مشتق شپږ ډولونه دي : اسم فاعل، اسم مفعول، اسم تفضيل، اسم آله ، اسم ظرف، صفت مشبه .

**اسم فاعل :** هغه اسم مشتق دی چي پر هغه ذات دلالت کوي چي په هغه کي آخذ قائم وي، د ثلاثي مجرد څخه د هغه وزن د مذکر لپاره : فَاعِلٌ، فَاعِلَانِ، فَاعِلُوْنَ او د مؤنث لپاره فَاعِلَةٌ، فَاعِلَتَانِ ، فَاعِلَاتٌ دي.

او د مبالغې وزنونه دي: فَعِلٌ(حَذِرٌ) ډېر پرهيز کوونکی، فَعِيْلٌ

(عَلِيْمٌ) ډېر علم لرونکی، فَعُوْلٌ(ضَرُوْبٌ) ډېر وهونکی، فَعَّالٌ (اَكَّالٌ) ډېر خوړونکی، فُعَّالٌ (قُطَّاعٌ) ډېرپرېکونکی، مِفْعَلٌ (مِجْزَمٌ) مِفْعَالٌ(مِجْزَامٌ) ډېر پرېکونکی، مِفْعِيْلٌ (مِنْطِيْقٌ) زيات ويونکی، فِعِّيْلٌ (شِرِّيْرٌ) زيات شرارت کوونکی، فُعَلَةٌ (ضُحَكَةٌ) زيات خندا کوونکی،فَعْلٌ (قَلْبٌ) زيات اوښتونکی،

او کله د مبالغې د زياتوب لپاره تاء اضافه کوي لکه: عَلَّامَةٌ، فَرُوْقَةٌ، مِجْزَامَةٌ.

**اسم مفعول**: هغه اسم مشتق دی چي پر هغه ذات دلالت کوي چي پر هغه ماخذ واقع وي ، د ثلاثي مجرد څخه د هغه وزن د مذکر لپاره مَفْعُوْلٌ، مَفْعُوْلَانِ، مَفْعُوْلُوْنَ او د مؤنث لپاره مَفْعُوْلَةٌ، مَفْعُوْلَتَانِ، مَفْعُوْلَاتٌ دي. ددې څخه ماسوا لاندي وزنونه هم راځي: فَعُوْلٌ لکه رَسُوْلٌ په معنی د مَرْسُوْلٌ، فَعِيْلٌ لکه جَرِيْحٌ په معنی د مَجْرُوْحٌ، فُعْلَةٌ لکه ضُحْكَةٌ په معنی د مَضْحُوْكٌ ، او دغه وزن شاذ (نادر) دی: فَعَلٌ لکه قَبَضٌ په معنی د مَقْبُوْضٌ اور فِعْلٌ لکه ذِبْحٌ په معنی د مَذْبُوْحٌ او فَاعِلٌ لکه كَاتِمٌ په معنی د مَكْتُوْمٌ.

**اسم تفضيل**: دا هغه اسم مشتق دی چي د يوه په نسبت په بل کي د ماخذ زياتوب وښيي لکه: زَيْدٌ اَفْضَلٌ مِنْ عَمْرٍو. يعني زيد په فضل

کي تر عمر زيات دی، د اسم تفضيل وزنونه د مذکر لپاره: اَفْعَلُ، اَفْعَلَانِ، اَفْعَلُوْنَ، اَفَاعِلُ، او دمؤنث لپاره فُعْلَى، فُعْلَيَانِ، فُعْلَيَاتٌ، فُعَلٌ دي.

**١ – فائده:** اسم تفضيل د غيرثلاثي مجرد څخه نه راځي مګر کله چي ضرورت سي نو د اکثر لفظ يا داسي نور الفاظ د باب د مصدر څخه مخکي راوړل کيږي لکه : زَيْدٌ اَكْثَرُ اِجْتِهَادًا مِنْ عَمْرٍو وَاَقَلُّ اِكْتِسَابًا مِنْ بَكْرٍ وَاَشَدُّ سَوَادًا مِنْ خَالِدٍ.

**٢ – فائده:** (اَسْوَدُ، اَعْوَرُ) اسم تفضيل نه دي بلکه صفت مشبه دي لکه چي مخکي به معلوم سي.

**اسم آله:** دا هغه اسم مشتق دی چي د فاعل څخه د فعل صادرېدو ذريعه او واسطه وي، دغه اسم د ثلاثي مجرد څخه ماسوا په بل هيڅ باب کي نه راځي، وزن يې دادی: مِفْعَلٌ، مِفْعَلَانِ، مِفْعَلَةٌ، مِفْعَلَتَانِ، مَفَاعِلُ، مِفْعَالٌ، مِفْعَالَانِ، مَفَاعِيْلُ ، او فِعَالٌ ډېر کم راځي، لکه: نِطَاقٌ د ملا تړلو آله، خِيَاطٌ د ګنډلو آله يعني ستن، او مُدُقٌّ ،د کوفتې آله، او مُنْخُلٌ دکېندلو آله، دغه دواړه شاذ (نادر) دي.

**اسم ظرف:** هغه اسم مشتق دی چي د فعل صادرېدو ځای يا وخت وښيي لکه مَضْرِبٌ د وهلو ځای يا وخت، د ثلاثي مجرد څخه د اسم ظرف وزن دادی: مَفْعَلُ، مَفْعَلَانِ، مَفَاعِلُ ، او يو څو صيغې د اسم

ظرف د باب څخه د قیاس خلاف راځي لکه: مَسْجِدٌ، مَنْبِتٌ، مَغْرِبٌ، مَشْرِقٌ.

د غير ثلاثي مجرد اسم ظرف د هغه د اسم مفعول پر وزن راځي لکه: مُعَسْكَرٌ د لښکر د هستوګني ځای.

**صفت مشبه** : هغه اسم مشتق دی چي پر هغه ذات دلالت کوي چي په هغه کي يو صفت ثابت قائم وي.

## د صفت مشبه وزنونه :

| وزن | مثال | معني | باب | وزن | مثال | معني | باب |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَعْلٌ | صَعْبٌ | سخت | کَرُمَ | فَاعِلٌ | کَابِرٌ | بزرګ | کَرُمَ |
| فِعْلٌ | صِفْرٌ | خالي | سَمِعَ | فَيْعِلٌ | سَيِّدٌ | مشر | نَصَرَ |
| فُعْلٌ | صُلْبٌ | سخت | کَرُمَ | فَعَالٌ | جَبَانٌ | بې زړه | کَرُمَ |
| فَعَلٌ | حَسَنٌ | نيک | کَرُمَ | فِعَالٌ | مِجَانٌ | سپين اوښ | کَرُمَ |
| فَعِلٌ | خَشِنٌ | سخت | کَرُمَ | فُعَالٌ | شُجَاعٌ | زړه ور | کَرُمَ |
| فَعُلٌ | نَدُسٌ | عقلمند | سَمِعَ | فَعَّالٌ | وَضَّاعٌ | بې توانه | کَرُمَ |
| فِعَلٌ | زِيَمٌ | خيرن | ضَرَبَ | فُعَّالٌ | کُبَّارٌ | مشر | کَرُمَ |

| وزن | مثال | معني | باب |
|---|---|---|---|
| فِعِلٌ | بِلِزٌ | چاغ | ضَرَبَ |
| فُعَلٌ | حُطَمٌ | بې رحمه | ضَرَبَ |
| فُعُلٌ | جُنُبٌ | ناپاک | كَرُمَ |
| اَفْعَلُ | اَحْمَرٌ | سور | كَرُمَ |
| فَعَلٰى | حَيَدٰى | .... | ضَرَبَ |
| فَعْلَانٌ | عَطْشَانٌ | تږی | سَمِعَ |
| فُعْلَانٌ | عُرْيَانٌ | لوڅ | سَمِعَ |

| وزن | مثال | معني | باب |
|---|---|---|---|
| فَعِيْلٌ | كَرِيْمٌ | بزرگ | كَرُمَ |
| فَعُوْلٌ | غَيُوْرٌ | غيرتي | نَصَرَ/ ضَرَبَ |
| فَعْلٰى | عَطْشٰى | تږي | سَمِعَ |
| فُعْلٰى | حُبْلٰى | حامله | سَمِعَ |
| فَعَلَانٌ | حَيَوَانٌ | حيوان | سَمِعَ |
| فَعْلَاءُ | حَمْرَاءُ | سره | سَمِعَ |
| فُعَلَاءُ | عُشَرَاءُ | حامله اوبنه | كَرُمَ |

# دوهم باب

## د بابونو په خاصيتو كي

د صرفو په اصطلاح كي د باب د خاصيت څخه مراد هغه زائد معنى ده چي د لغوي معنى څخه ماسوا وي، د ثلاثي مجرد شپږ بابونه دي ، په هغو كي اول دري ام الابواب يعني اصل بابونه بلل كيږي ځكه په دغه درو كي د ماضي د عين حركت د مضارع د عين حركت مخالف وي، همدارنگه د دوئ استعمال زيات دى ، اوس د هر باب خاصيت بيانيږي :

## د نَصَرَ يَنْصُرُ خاصيت:

ددغه باب مشهور خاصيت مبالغه ده، يعني په دوو كسانو كي د يوه د غلبې ظاهرولو لپاره د نصر باب د مفاعلت وروسته راوړل كيږي لكه خَاصَمَنِي زَيْدٌ فَخَصَمْتُهُ ، زيد زما سره جگړه وكړه، زه په جگړه كي پر هغه غالب سوم ، او: يُخَاصِمُنِي زَيْدٌ فَاَخْصُمُهُ ، زه او زيد په خپلو كي جگړه كوو او په جگړه كي زه پر هغه غالب كيږم.

## د ضَرَبَ يَضْرِبُ خاصيت

ددغه باب خاصيت مبالغه ده، مگر هغه وخت چي مثال اجوف يايي او ناقص يائي وي او وروسته تر مقابلې ذكر وي، لكه: بَايَعَنِي زَيْدٌ فَبِعْتُهُ زيد زما سره رانيول او پلورل وكړه، زه د هغه څخه په رانيولو او پلورلو كي زيات سوم.

**فائده**: دا خبره بايد په ذهن كي وي چي كله د مبالغې په صورت كي يو فعل راوړل سي كه چيري هغه فعل صحيح يا اجوف واوي يا ناقص واوي وي نو هغه د نصر د باب څخه راوړل كيږي كه څه هم هغه د بل باب څخه وي، لكه :

يُضَارِبُنِي زَيْدًا فَاضْرُبُهُ، زما او د زيد په منځ کي وهل کيږي مګر زه په وهلو کي غالب کيږم.

## د سَمِعَ يَسْمَعُ خاصيت

دغه باب زيات وختونه لازم وي او کم وخت متعدي وي، د ناروغۍ، غم، خوشحالۍ، رنګ، عيب او شکل الفاظ زيات وختونه د دغه باب څخه وي، لکه سَقِمَ، ناروغ سو، حَزِنَ غمجن سو، فَرِحَ خوشحاله سو، کَدِرَ خيرن سو، عَوِرَ يوسترګی سو، بَلِجَ پراخ تنديه سو.

## د فَتَحَ يَفْتَحُ خاصيت

د دغه باب خاصيت لفظي دی يعني په دغه باب کي د عين يا لام کلمې پر ځای حرف حلقي وي لکه: مَنَعَ منعه يې کړ، سَلَخَ پوست يې کش کړ، جَحَدَ انکار يې وکړ، نَهَضَ پورته سو، ذَهَبَ ولاړی، مګر رَکَنَ، يَرْکُنُ او اَبَی يَاْبَی شاذ دي.

## د کَرُمَ يَکْرُمُ خاصيت

دغه باب همېشه لازم وي او په معنی کي يې خلقي او فطري صفات تر لاسه کيږي لکه: حَسُنَ ښکلی سو، صَغُرَ کوچنی سو، کَبُرَ لوی سو، يا په عارضي تو ګه د مثل ذاتي مستحکم سوی وي لکه: فَقُهَ پوه سو، يا د خلقي مشابه وي لکه جَنُبَ، طَهُرَ.

## د حَسِبَ يَحْسِبُ خاصيت

په دغه باب کي يو څو د شمېر الفاظ دي لکه: نَعِمَ په خوشحالي کي

سو، وَبِقَ هلاک سو، وَمِصقَ دوستي يې وکړه، وَفِـقَ موافقت يې وکړ، وَثِقَ باور يې وکړ، وَرِثَ وارث سو، وَرِعَ پرهيز ګار سو، وَرِمَ وپړسېدی، وَرِیَ ...... وَلِیَ نژدې سو، بَـلِیَ وروست سو، وَغِرَ وَحِرَ نژدې سو، وَهِلَ د يو شي خيال يې راغلی، وَعِمَ د يو چا لپاره يې د نعمت دعاء وکړه، وَطِیَ تر پښو يې لاندې کړ، يَئِسَ نااميده سو، يَبِسَ وچ سو.

## د افعال د باب خاصيت

د دغه باب پنځلس خاصيتونه دي:

۱. تَعْـدِيَه، يعني کوم چي په مجرد کي لازم وي هغه په افعال کي متعدي کيږي او که هلته په يوه مفعول متعدي وي نو دلته به په دوو مفعولو متعدي وي، لکه: خَرَجَ زَيْدٌ زيد ووتی، اَخْرَجْتُهُ ما هغه وايستی، حَفَرْتُ نَهْرًا، ما وياله وکيندل، او: اَحْفَرْتُ زَيْدًا نَهْرًا، ما په زيد وياله وکيندل، او عَلِمْتُ زَيْدًا فَاضِلاً زه خبر سوم چي زيد عالم دی، او اَعْلَمْتُ زَيْدًا عَمْرًوا فَاضِلاً، ما زيد خبر کړ چي عمرو عالم دی.

۲. تَصْيِيْرُ، يعني د يو شي صاحب ماخذ ګرځول، لکه: اَشْرَكْتُ النَّعْلَ، ما څپلی تسمه داره کړې، شراک ماخذ دی په معنی د تسمه، اَلْحَمَ زَيْدٌ زيد د غوښو خاوند سو، اَطْفَلَتْ هِنْدٌ هنده کوچني والا سوه.

۳. الزام: يعني د متعدي څخه لازم کول، لکه: اَحْمَـدَ زَيْدٌ، زيد د تعريف وړ سو.

۴. تَعْرِيْض: يعني د فاعل مفعول د ماخذ پر ځای اخيستل، لکه: اَبَعْتُ

اَلْفَرَسَ، ما آس د پلورلو ځای ته بوتلی، د ابعت ماخذ بیع دی

۵. وِجْدَان: یعني یو شی په ماخذ سره موصوف کول، لکه: اَبْخَلْتُ زَیْدًا، ما زید بخیل ولیدی.

**فائده:** که ماخذ لازم وي نو مدلول د فاعل په صیغه ادا کوو لکه: اَبْخَلْتُ زَیْدًا د دغه ماخذ بخل لازم دی ځکه مدلول بخیل کیږي او که ماخذ متعدي وي نو مدلول د مفعول په صیغه بیانوو لکه: اَحْمَدْتُهُ، ما هغه محمود تر لاسه کړ، په دې کي ماخذ حمد متعدي دی ځکه مدلول محمود سو، ښه فکر وکړئ.

٦. سلب: یعني د یو شي څخه ماخذ ایسته کول، د سلب دوه ډولونه دي: ١- که فعل لازم وي نو سلب د فاعل څخه کیږي لکه: اَقْسَطَ زَیْدٌ، زید د خپل ځان څخه ظلم ایسته کړ، او که فعل متعدي وي نو سلب د مفعول څخه کیږي لکه: شَکَیٰ وَاَشْکَیْتُهُ، یعني هغه شکایت وکړ او ما د هغه شکایت لیري کړ.

٧. اِعْطَاءِ مَاخَذْ: یعني د ماخذ ورکول، لکه: اَشْوَیْتُهُ، ما هغه ته غوښې د اېشولو لپاره ورکړې، او دا ویل چي ما هغه ته اېشول سوي غوښې ورکړې غلط دي، او: اَقْطَعْتُهُ قُضْبَانًا، جمع د قضیب په معنی د ښاخ، ما هغه ته د ښاخو رېبلو اجازه ورکړه.

٨. بُلُوْغ: یعني ماخذ ته رسېدل یا داخلېدل، لکه: اَصْبَحَ زَیْدٌ، زید د سهار په وخت کي راورسېدی، دا بلوغ زماني دی او: اَغْرَقَ عَمْرُو،

عمرو عراق ته داخل سو، دا بلوغ مکاني دی، او: اَعْشَرَتِ الـدَّارِهِمُ ، درهم تر لسو پوري ورسيدی، دا بلوغ عددي دی .

۹. صَيْرُوْرَة: ددغه درې معناوي دي، ۱- د يو شي صاحب ماخذ کېدل لکه: اَلْبَنَتِ النَّاقَةُ ، اوښه شېدو والا سوه، دلته لبن ماخذ او ناقة صاحب ماخذ سوه، ۲- د داسي شي مالک کېدل چي په هغه کي د ماخذ صفت تر لاسه کيږي لکه: اَجْرَبَ الرَّجُلُ ، يو سړی د خارشي اوښانو مالک سو، دلته جرب ماخذ او په اوښ کي د جرب صفت تر لاسه کيږي او رجل د جرب والا اوښ مالک دی، ۳- په ماخذ کي د يو شي مالک کېدل لکه : اَخْرَفَتِ الشَّاةُ مېږه په مني کي د بچي څښتنه سوه.

۱۰. لِيَاقَتْ: يعني د يو شي مدلول د ماخذ لائق او مستحق کېدل لکه: اَلَامَ الْفَرْعُ ، مشر د ملامتيا وړ سو .

۱۱. حَيْنُوْنت: يعني د يو شي د ماخذ وخت ته رسېدل، لکه: اَحْصَدَ الزَّرْعُ، کښت د رېبلو وخت ته ورسېدی، دلته ماخذ حصاد دی .

۱۲. مُبَالَغه: يعني ماخذ په زيات مقدار او کيفيت کي بيانول، لکه: اَثْمَرَ النَّخْلُ، د خرما درختي ډېره مېوه وکړه، او: اَسْفَرَالصُّبْحُ ، سهار ښه روښانه سو .

۱۳. اِبْتِدَاء: يعني د يو فعل شروع د افعال د باب څخه په هغه معنی کي راتلل چي په مجرد کي نه وي، لکه: اَشْفَقَ، وبېرېدی، په مجرد کي

شفقت د مهربانئ په معنی استعمالیږي ، او : اَقْسَمَ ، قسم یې وکړ، په مجرد کي قسم د تقسیم په معنی استعمالیږي .

۱۴. مجرد موافقت : فَعَّلَ و تَفَعَّلَ وإِسْتَفْعَلَ،

اول مثال: دَجَاالَّلیْلُ وَاَدْجَی،دواړه بابونه په مجرد او مزید کي په معنی کي متفق دي یعني شپه تاریکه سوه .

دوهم مثال: اَکْفَرَهُ وَکَفَّرَهُ ، هغه یې کفر ته منسوب کړ، په دې کي د نسبت خاصیت دی .

دریم مثال: اَخْبَیْتُهُ وَتَخَبَّیْتُهُ ، ما ټوکر خېمه کړ، په دې کي خاصیت اتخاذ دی .

څلورم مثال: اَعْظَمْتُهُ وَاِسْتَعْظَمْتُهُ، ما پر هغه دمشر ګمان وکړ، په دې کي خاصیت حسبان دی .

۱۵. مطاوعة فَعَلَ مجرد وَفَعَّلَ مزید فیه، یعني دفَعَلَ او فَعَّلَ وروسته د اَفْعَلَ د دې لپاره راتلل چي مفعول د فاعل اثر قبول کړ .

اول مثال: کَبَبْتُهُ فَاَکَبَّ ،ماهغه پوړموخی وغورځوی نو هغه پوړموخی وغورځېدی .

دوهم مثال: بَشَّرْتُهُ فَاَبْشَرَ ، ما هغه ته زیری ورکړ نو هغه خوشحاله سو

**فائده**: په خاصه مطاوعت کي اَفعَلَ لازم وي که څه هم في نفسه متعدي دی.

## د تَفْعِیْل خاصیت:

د دغه باب دیارلس خاصیتونه دي :

۱– او ۲: تعدیه وتصییر: د دواړو معنی د افعال په باب کي معلومه سوې

ده، لکه: نَـزَلَ وَنَزَّلْتُهُ ، هغه کښته سو او ما هغه کښته کړ، (دغه ترجمه د تعديه په اعتبار سوه) او ما هغه صاحب نزول کړ (دغه ترجمه د خاصيت تصيير په اعتبار ده) د تعديه او تصيير جلا جلا مثالونه دادي: فَرِحَ زَيْدٌ فَرَّحْتُهُ ، زيد خوشحاله سو او ما هغه خوشحاله کړ، دا د تعديه مثال دی او وَتَّرْتُ الْقَوْسَ، ما ځوکه والا غشی جوړ کړ، وتر ماخذ دی، دا د تصيير مثال دی.

۳- سلب: لکه: قَذِيَتْ عَيْنُهُ ، د هغه په سترګو کي چلاخه وموښتل، او: قَذَّيْتُ عَيْنُهُ ، ما د هغه د سترګي ځخه خاشه راوکښل، (قذي ماخذ دی) ، قَرَّرْتُ الْاِبِلَ ، ما د اوښ ځخه چلاخه ايسته کړه، (قرة ماخذ دی)

۴: ، صَيْرُوْرَة: لکه نَوَّرَالشَّجَرُ، درخته شکوفه داره سوه.

۵: بُلُوْغ: لکه خَيَّمَ زَيْـدٌ ، زيد په خيمه کي داخل سو ، او: وَعَمَّقَ عَمْرٌ،عمرو تر عمق پوري ورسېدی ، يعني د خبري ژوروالی يې معلوم کړ.

۶- مبالغه، دغه خاصيت د تفعيل د باب ځخه ډېر وي، مبالغه پر درې ډوله ده: ۱- مبالغه په فعل کي، لکه: صَرَّحَ ښه ښرګند سو، جَوَّلَ، ډېر وګرځېدی، ۲- مبالغه په فاعل کي لکه: مَوَّتِ الْاِبِلُ ، په اوښانو ډېر مرګ ګډ سو، ۳- مبالغه په مفعول کي لکه: قَطَّعْتُ الثِّيَابَ، ما ډېري جامې پرې کړې،

۷- نسبت به ماخذ: لکه: فَسَّقْتُ زَيْدًا، ما زيد په فسق منسوب کړ. (فسق ماخذ دی).

۸: اِلْبَاسِ مَاْخَذ ، يعني د ماخذ اغوستل، لكه: جَلَّلْتُ الْفَرَسَ، ما آس ته زين واغوستى، (جل ماخذ دى).

۹: تَخليط مَاْخَذ ، يعني په ماخذ سره د يو شي ملمع كول، لكه: ذَهَّبْتُ السَّيْفَ ، ما توري ته د سرو زرو آب وركړ، (ذهب ماخذ دى).

۱۰: تحويل، يعني د يو شي ماخذ يا مثل ماخذ گرځول.

اول مثال: نَصَّرَ زَيْدٌ عَمْرًوا، زيد عمر نصراني كړ.

دوهم مثال: خَيَّمْتُهُ، ما هغه د خېمې په ډول كړ.

۱۱: قَصَر: يعني د اختصار لپاره د مركب يوه كلمه د تفعيل د باب ثخه اخيستل، لكه: هَلَّلَ ، لااله الاالله يې وويل.

۱۲: موافقت فعل مجرد و وأَفْعَلَ و تَفَعَّلَ ،

اول مثال: تَمَّرْتُهُ وَتَمَرْتُهُ ، ما هغه ته خرما وركړه، د دواړو يوه معنى ده.

دوهم مثال: تَمَّرَ وَأَتْمَرَ، لنده خرما وچه سوه.

دريم مثال: تَرَّسَ وَتَتَرَّسَ ، سپر يې په كار واچوى.

۱۳: ابتداء، لكه كَلَّمْتُهُ ، ما د هغه سره خبري وكړې، د تفعيل په باب كي دغه معنى ابتدايي ده، ماده مجرد كلم په معنى د مجروح كولو دى او لكه: جَرَّبَ، امتحان يې كړ، په مجرد كي جرب خارش ته وايي.

## د تَفَعُّل خاصيت

د دغه باب يوولس خاصيتونه دي:

۱: مُطَاوَعَت تَفْعِيْل ، د دغه دوه ډولونه دي، يو دا چي د فاعل اثر مفعول

قبول کړي لکه: قَطَّعْتُهُ فَتَقَطَّعَ، ما هغه پرې پرې کړ، نو هغه پرې پرې سو.

دوهم دا چي د اثر نه قبلول ممکن وي لکه: عَلَّمْتُهُ فَتَعَلَّمَ، دلته د علم نه قبلول ممکن دي.

۲: تَکَلُّف: يعني د ماخذ په حاصلولو کي تکلف کول لکه: تَکَرَّمَ زَيْدٌ، زيد په تکليف سره کوفي سو، تَجَوَّعَ عَمْرٌو، عمرو په تکليف وږی سو.

۳: تَجَنُّب: يعني د ماخذ څخه پرهيز کول، لکه: تَحَوَّبَ زَيْدٌ، زيد د ګناه څخه وساتل سو، (حوب ماخذ دی).

۴: لُبْس مَاخذ: يعني د ماخذ اغوستل، لکه: تَخَتَّمَ زَيْدٌ، زيد ګوتمی په ګوته کړل، (خاتم ماخذ دی).

۵: تَعَمُّل، يعني ماخذ په کار اچول، لکه: زيد تيل ولګول، (دهن ماخذ دی)، عمرو سپر په کار واچوی، (ترس ماخذ دی)، بکر خيمه ودرول.

۶: اتخاذ، ددغه څو صورتونه دي:

اول: ماخذ جوړول، لکه: تَبَوَّبَ، دروازه يې جوړه کړه، دلته باب ماخذ دی.

دوهم: ماخذ اخيستل، لکه: تَجَنَّبَ، يوې خوا ته سو، جانب يې ماخذ دی.

دريم: د يو شي ماخذ ګرځول، لکه: تَوَسَّدَ الْحَجَرُ، ډبره يې بالښت کړ، (وسادة ماخذ دی).

څلورم: ماخذ نيول، لکه: تَأَبَّطَ الصَّبِيَّ، کوچنی يې په بغل کي ونيوی، (ابط ماخذ دی).

۷: تَدْرِيج: يعني د يو کار په کراره کراره کول، لکه: تَجَرَّعَ زَيْدٌ، زيد يې

په غړپ غړپ څېښي، وتَحَفَّظَ عَمْرُو: عمر لږ لږ ياد کړ.

۸: تَحَوُّلْ: يعني د يو شي عين ماخذ يا مثل ماخذ کېدل، لکه: تَنَصَّرَ زَيْدٌ، زيد نصراني سو، تَبَحَّرَ: د درياب په ډول سوی دی.

۹: صَيْرُوْرَة: يعني د ماخذ خاوند کېدل، لکه: تَمَوَّلَ زَيْدٌ، زيد د مال خاوند سوی دی.

۱۰: موافقت مجرد: يعني د بل باب هم معنی کېدل، لکه: تَقَبَّلَ په معنی د قَبِلَ، موافقت اَفْعَلَ لکه: تَبَصَّرَ واَبْصَرَ، موافقت فَعَّلَ لکه تَكَذَّبَهُ وَكَذَّبَهُ، هغه په دروغو منسوب سو، موافقت اِسْتَفْعَلَ لکه تَحَوَّجَ و اِسْتَحْوَجَ، د حاجت طلب يې وکړ.

۱۱: ابتدا:، ددغه دوه صورتونه دي:

اول: دا چي د هغه استعمال د مجرد څخه نه وي لکه: تَشَمَّسَ، په لمر کي کښېنستل.

دوهم: دا چي په مجرد کي د بلي معنی لپاره مستعمل وي لکه: تَكَلَّمَ زَيْدٌ، زيد خبري وکړې او دا په مجرد کي كَلَّمَ په معنی د جَرَحَ (زخمي يې کړ) مستعمل دی.

## د مُفَاعَلَه خاصيت

د دغه باب اووه خاصيتونه دي:

۱: مُشَارَکت: د دوو کسانو يو ځای داسي کار کول چي د يوه فعل پر بل واقع وي، يعني په هغوئ کي هر يو فاعل هم وي او مفعول هم، مګر په عبارت کي

یو فاعل ظاهر سي او بل مفعول، لکه: قَاتَلَ زَيْدٌ عَمْرًوا، زید او عمر په خپلو کي جگړه وکړه، یعني زید د عمر سره او عمرو د زید سره جگړه وکړه.

۲: موافقت مجرد: یعني د مجرد هم معنی کیدل، لکه: سَافَرَ زَيْدٌ، زید سفر وکړ، سَافَرَ په معنی د سَفَرَ،

۳: موافقت اَفْعَلَ: لکه: بَاعَدْتُّهُ بمعني اَبْعَدْتُّهُ، ما هغه لیري کړ.

۴: موافقت تفاعل: لکه: شَاتَمَ زَيْدٌ عَمْرًوا، زید او عمرو په خپلو کي بنکنځل وکړه، بمعني تَشَاتَمَا.

۵: تَصْيِيْر: یعني یو شي صاحب ماخذ گرځول، لکه: عَافَاکَ اللهُ اَیْ جَعَلَکَ ذَاعَافِيَةٍ.

۶: ابتداء: لکه: قَاسَا زَيْدٌ هَذِهِ الشِّدَّةَ، زید دغه تکلیف درد وزغمی، مجرد قَسْوَة په معنی د سختی دی.

۷: موافقت فَعَّلَ: لکه: ضَاعَفْتُ الشَّئَ، ما شي دوه چنده کړ، بمعني ضَعَّفْتُهُ. (فیوض عثماني (۸۲).

## د تَفَاعُلْ خاصیت

د دغه باب اووه خاصیتونه دي:

۱: تَشَارُک: دغه خاصیت د مفاعلة په ډول دی، یوازي دا فرق دی چي په مفاعلة کي یو فاعل او بل مفعول راوړل کیږي او په تفاعل کي دواړه د فاعل په صورت کي ذکر کیږي، که څه هم د فعل صدور او واقع کیدو کي دواړه یو ډول تعلق لري، یعني په دواړو کي هر یو فاعل هم وي او مفعول هم، لکه:

تَشَاتَمَ زَيْدٌ وعَمْرٌو، زيد او عمرو په خپلو کي ښکنځل وکړه.

۲: شِرْکَتْ: يوازي د فعل په صدور کي نه په وقوع کي، لکه: تَرَافَعَا شَيْئًا: دواړو يو شی پورته کړ.

۳: تَخْيِيْلْ: يعني د يو ماخذ حصول په خپل ځان کي ليدل چي په حقيقت کي حاصل نه دی، لکه: تَمَارَضَ زَيْدٌ، زيد د ښودلو لپاره خپل ځان ناروغ کړ، حال دا چي هغه ناروغ نه دی.

**فائده**: په تکلف او تخييل کي دا فرق دی چي په تکليف کي ماخذ فعل مرغوب وي او په تخييل کي يوازي بل ته د ښودلو لپاره د ماخذ فعل څخه کار اخيستل کيږي په حقيقت کي مطلوب نه وي.

۴: مُطَاوعت فاعل، چي په معنی د افعل دی لکه: بَاعَدْتُهُ فَتَبَاعَدَ، دلته باعدته په معنی د ابعد ته دی، ځکه د تَبَاعَدَ هغه مطاوع سو، ما هغه ليري کړ نو هغه ليري سو.

۵: موافقت مجرد: لکه: تَعَالَی په معنی د عَلَا (لوړ سو).

۶: موافقت اَفْعَلَ: لکه: تَيَامَنَ په معنی د اَيْمَنَ، يمن ته داخل سو

۷: اِبْتِدَاء: لکه: تَبَارَکَ اللّٰهُ، الله ﷻ ډېر بابرکت دی، ددغه مجرد بَرَکَ دی په معنی د اوښ کښېنولو.

**فائده**: کوم لفظ چي د مفاعلة په باب کي دوه مفعوله غواړي هغه د تفاعل په باب کي يو مفعول غواړي، او کوم باب چي په مفاعله کي متعدي په يوه مفعول وي هغه باب په تفاعل کي لازم وي، لکه: جَاذَبْتُ زَيْدًا ثَوْبًا، ما د

زيد جامه کش کړه او تَجَاذَبْنَا ثَوْبًا ، موږ د يو بل جامه کش کړه، او: قَاتَلْتُ زَيْدًا وَتَقَاتَلْتُ اَنَـا وَ زَيْـدٌ.

## د اِفْتِعَال خاصيت

د دغه باب شپږ خاصيتونه دي :

۱: اِتِّخاذ: ، د دغه څلور خاصيتونه دي چي د تفعل په باب کي تېر سول، لکه: اِجْتَحَرَ، سوری يې وکړ، ماخذ حجر دی د جيم په ضمه سره او : اِحْتَجَرَ، حجره يې جوړه کړه، ماخذ حجرة د حاء په ضمه سره دی، دا د ماخذ جوړولو مثال دی، اِجْتَنَبَ يوې خوا ته سو، دا د ماخذ نيولو مثال دی، اِغْتَذَی الشَّاةَ، پسه يې خوراک وګرځوی، دا د يو شي ماخذ جوړولو مثال دی، اِعْتَضَدَهُ په بغل کي يې ونيوی، دا په ماخذ کي د نيولو مثال دی (ماخذ عضد دی).

۲: تَصَرُّف: يعني د فعل په حاصلولو کي کوښښ کول لکه: اِكْتَسَبَ، په کسب کي کوښښ کول.

۳: تَخَيُّر: يعني د فاعل د خپل ځان لپاره کوښښ کول لکه: اِكْتَالَ الشَّعِيْرَ، د خپل ځان لپاره يې اوربشي وتللې. (ماخذ تلل دی).

۴: مطاوعت فَعَلَ: لکه: غَمَمْتُهُ فَاغْتَمَّ ، ما هغه غمګين کړ نو هغه غمګين سو.

۵: موافقت مجرد: لکه: اِبْتَلَجَ بمعني بَلَجَ ، روښانه سو، موافقت اَفْعَلَ لکه

: اَجْحَزَ، حجاز ته داخل سو، موافقت تَفَعُّلْ لکه اِرْتَدَی بمعنی تَرَدّٰی څادر يې واچوی، او موافقت تَفَاعُلْ لکه : اِخْتَصَمَ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو، بمعنی تَخَاصَمَا، او موافقت اِسْتَفْعَلَ، لکه اِيْتَجَرَ بمعنی اِسْتَاْجَرَ، مزدوري يې وغوښته.

۶: ابتداء: لکه: اِسْتَلَمَ، ډبره يې مچ کړه، (سلمة د لام په کسره سره د ډبري په معنی دی).

## د اِسْتِفْعَال خاصيت

د دغه باب لس خاصيتونه دي:

۱: طَلَب: يعني د ماخذ طلب کول لکه: اِسْتَطْعَمْتُهُ، ما د هغه څخه خوراک طلب کړ.

۲: لِيَاقت: يعني د يو شي د ماخذ لائق کېدل لکه: اِسْتَرْقَعَ الثَّوْبُ، جامه د پېوند وړ سوه، (ماخذ رقعة دی).

۳: وجدان: لکه: اِسْتَکْرَمْتُه، ما هغه کريم تر لاسه کړ.

۴: حِسْبَان: يعني يو شی د ماخذ سره موصوف ګڼل لکه: اِسْتَحْسَنْتُهُ، ما پر هغه د نېک ګمان وکړ. (ماخذ حسن دی).

۵: تَحَوُّل: يعني د يو شي عين ماخذ يا مثل ماخذ کېدل او دا پر دوه ډوله دي: ۱- صوري لکه: اِسْتَحْجَرَالطِّيْنُ، ختې ډبره سوې يا د ډبري په ډول سوې، (دلته حجر ماخذ دی) ۲- معنوي، لکه: اِسْتَوْنَقَ الْجَمَلُ، اوښ اوښه سوه، يعني په کمزوری کي.

۶: اِتِّخاذ: لکه: اِسْتَوْطَنَ الْهِنْدُ، د هند ځخه وطن جوړ سو.

۷: قصْر: يعني د اختصار لپاره د مرکب ځخه يوه کلمه اشتقاق کول لکه: اِسْتَرْجَعَ، اِنَّالِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ يې وو ايه.

۸: مُطَاوَعَتِ اَفْعَلَ لکه: اَقَمْتُهُ فَاسْتَقَامَ، ما هغه قائم کړ نو هغه قائم سو

۹: مَوافَقَت مجرد واَفْعَلَ وَتَفَعَّل واِفْتَعَلَ لکه: اِسْتَقَرَّ وَقَرَّ، قرار يې ونيوی، اِسْتَجَابَ وَاَجَابَ، جواب يې ورکړ (قبول يې کړ) او: اِسْتَكْبَرَ وَتَكَبَّرَ، غرور يې وکړ، او اِسْتَعْصَمَ وَاعْتَصَمَ، هغه نوکاره ولګوي.

۱۰: اِبْتِداء: لکه: اِسْتَعَانَ، د نامه لاندي وېښتان يې پاک کړه، (عانه ماخذ دی).

## د اِنْفِعَال خاصيت

د دغه باب اووه خاصيتونه دي:

۱: لزوم: لکه: اِنْصَرَفَ، وګرځېدی (لازم)، صَرَفَ وګرځېدی (متعدي)

۲: عِلَاج:، يعني په حواس ظاهره سره ادراک کول، دغه دواړه خواص يعني لزوم او علاج د انفعال د باب ځخه لازمي دي او له دې
ځخه بغير په نورو بابو کي د دغه خواصو استعمال مجازي وي.

۳: مطاوعت فعل مجرد، لکه: كَسَرْتُهُ فَانْكَسَرَ، او دا د دغه باب خاصه غالبه ده.

۴: مطاوعت اَفْعَلَ لکه: اَغْلَقْتُ الْبَابَ فَانْغَلَقَ، ما دروازه بنده کړه نو هغه بنده سوه.

۵: موافقت فَعِلَ لکه: اِنْبَلَجَ بمعني بَلِجَ، (ورين تنديه سو) او موافقت اَفْعَلَ لکه: اِنْجَحَزَ بمعني اَحْجَزَ، حجاز ته ورسېدی، او په حَيْنُوْنَتْ کي لکه: اِنْحَصَدَ الزَّرْعُ بمعني اَحْصَدَ الزَّرْعُ، کښت د رېبلو وخت ته ورسېدی.

**فائده**: د انفعال د باب دغه خاصه نادر الوجود ده.

۶: د انفعال د باب فاء کلمه به لام، میم، نون، راء او حرف لین نه وي په وجه د ثقيل کېدو او په دغه حروفو کي د انفعال پر ځای افتعال راځي لکه: رَفَعَهُ فَارْتَفَعَ وَنَقَلَهُ فَانْتَقَلَ، مګر اِنْمَحَى او اِنْمَازَ، شاذ دي.

۷: ابتداء: لکه: اِنْطَلَقَ، ولاړی، او مجرد يې طلاقت په معنی د ورين تندي دی.

## د اِفْعِيْعَال خاصيت

د دغه باب څلور خاصيتونه دي:

۱: لزوم: او دا غالب دی او تعديه لږ دی لکه: اِحْلَوْلَيْتُهُ، ما پر هغه د خوږ ګمان وکړ، او: عْرَوْرَيْتُهُ، زه پر هغه بې زينه سپور سوم.

۲: مبالغه: او دا لازم دی لکه: اِعْشَوْشَبَ الْاَرْضُ، مځکه ډېره وښو والا سوه.

۳: مطاوعت فَعَلَ، لکه: ثَنَيْتُهُ فَاثْنَوْنَى، ما هغه و پېچی نو هغه وپېچل سو.

۴: مطاوعت اِسْتَفْعَلَ لکه: اِحْلَوْلَيْتُهُ بمعنى اِسْتَحْلَيْتُهُ، دغه دواړه خاصيتونه نادر دي.

## د اِفْعِلَال او اِفْعِيْلَال خاصيت

د دغه دواړو څلور خاصيتونه دي :

(۱):لزوم- (۲):مبالغه- (۳): لون- (۴):عيب: لکه: اِحْمَرَّ ، ډېر سور سو . اِشْهَابَّ، ډېر سپين سو ،اِحْوَلَّ اِحْوَالَّ، ډېر چيک سو.

## د اِفْعِوَّال خاصيت

د دغه باب بناء مُقْتَضَبٌ (صيغه اسم مفعول ) دی، او په اصطلاح کي هغه دی چي د هغه اصل يا مثل اصل موجود نه وي او د حرف الحاق او حرف زائد للمعنی څخه خالي وي .

## د فَعْلَلَ خاصيت

د دغه باب ډېر خاصيتونه دي چي په هغو کي يو څو دا دي:

۱: قَصْر: لکه: بَسْمَلَ، بسم الله الرحمن الرحيم يې ووايه .

۲: اِلْبَاس: لکه: بَـرْقَعْتُهُ ، ما هغه ته بغره واغوستل.

۳: مطاوعت ، لکه: غَطْرَشَ اللَّيْلُ بَصَرَهُ فَغَطْرَشَ ، شپې د هغه ديد پټ کړ نو هغه پټ سو .

**فائده:** دغه باب همېشه صحيح او مضاعف وي او مهموز کم وي

لکه: زَلْزَلَ-وَسْوَسَ.

## د تَفَعْلُلْ خاصيت

ددغه باب دوه خاصيتونه دي :

١: مطاوعت فَعْلَلَ، لکه: دَحْرَجْتُهُ فَتَدَحْرَجَ ، ما هغه وپاروی نو هغه وپاريدی.

٢: اِقْتِضَاب لکه:تَهَبْرَسَ، په نازولاړی.

## د اِفْعَنْلَلَ خاصيت

د دغه باب دوه خاصيتونه دي :

١: لزوم. ٢: مطاوعت فَعْلَلَ مع مبالغه،لکه: ثَعْجَرْتُهُ فَاثْعَنْجَرَ، ما د هغه وينه توی کړه نو هغه وينه بهيدونکی سو.

## د اِفْعَلَلَّ خاصيت

(١)لزوم(٢)مطاوعت فعلل:

دغه باب هم لازم او د فعلل مطاوع راځي لکه: طَمْاَنْتُهُ فَاطْمَئِنَّ، ما هغه ته ډاډ ورکړ نو هغه ډاډه سو، او کله مقتضب هم راځي لکه: اِكْفَهَرَّ النَّجْمُ، ستوری روښانه سو، دد غه باب مجرد نه راځي.

**فائده**: په ابواب ملحقات معاني او خواص کي د ملحق بها په ډول وي مگر په هغو کي څه مبالغه وي.

پای